وَهِيَ مُبَيِّنَةٌ لِمَا أُجْمِلَ مِنْهُ ۔ وَسُئِلَ الشَّافِعِيُّ مَرَّةً عَنْ مُحْرِمٍ قَتَلَ زُنْبُوراً
حدیث د قرآن د مجمل بیان کوي ۔ او د امام شافعيؒ نه پوښتنه اوشوه ۔ که محرمؒ د مچ
فَقَالَ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا ۔ وَكَانَ
مچئ او وژله نو بیا؟ دوي اووے ۔ چه د خوږ نبيؐ په وینا د کولو او نه کولو عمل کوئ ۔ او د
يَقُولُ إِذَا صَحَّ الْحَدِيثُ فَهُوَ مَذْهَبِي قَالَ ابْنُ حَزْمٍ أَيْ صَحَّ عِنْدَهُ أَوْ
دوي به وے ۔ چه حدیث صحیح شي نو دا زما مذهب دے ۔ ابن حزم وے ۔ چه صحیح زما
عِنْدَ غَيْرِهِ مِنَ الْأَئِمَّةِ فَهُوَ كَافٍ ۔ وَقَالَ إِذَا رَأَيْتُمْ كَلَامِي يُخَالِفُ كَلَامَ
یا د بل سړي صحیح ثابت شي ۔ نو کافي ده ۔ او که زما کلام د خوږ نبيؐ د کلام نه مخالف
رَسُولِ اللّٰهِ فَاعْمَلُوا بِكَلَامِ رَسُولِ اللّٰهِ وَاضْرِبُوا بِكَلَامِي الْحَائِطَ ۔ وَعَنِ
وو ۔ نو د خوږ نبي په کلام عمل کوئ ۔ او زما خبره په دیوال ووَلئ ۔ او د
الْإِمَامِ أَحْمَدَ فِي ذَمِّ الرَّأْيِ وَتَقْيِيدِهِ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ ۔ وَكَانَ يَقُولُ
امام احمد نه روایت دے ۔ په باره د بدئ د رائے کښې ۔ او په بند کولو د ئے
ضَعِيفُ الْحَدِيثِ إِلَيْنَا أَحَبُّ مِنْ رَأْيِ الرِّجَالِ ۔ فَحَاصِلُ أَقْوَالِ
کښې ۔ په قرآن حدیث باندے ۔ او دوي به وے ۔ چه مونږ ضعیف حدیث د سړو د رائے نه
الْأَئِمَّةِ لُزُومُ اتِّبَاعِ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ وَالْاِجْتِنَابُ مِنْ رَأْيِ الرِّجَالِ
زیات محبوبه گڼو ۔ نو خلاصه د اماماتو د وینا نو دا شوه ۔ چه د قرآن حدیث
لِأَنَّ اللّٰهَ مُنَزَّهٌ عَنِ الْخَطَاءِ وَالنِّسْيَانِ ۔ وَالرَّسُولُ أَمِينٌ وَمَعْصُومٌ
تابعداري ۔ او د سړو د رائے نه پرهیز پکار دے ځکه چه الله د خطاء او د هیر نه پاک
بِالْوَحْيِ عَنِ الْخَطَاءِ وَالنِّسْيَانِ ۔ فَكُلُّ مَنْ طَلَبَ أَنْ يَحْكُمَ فِي شَيْءٍ مِنْ
دے ۔ او خوږ نبيؐ امین او پاک دے ۔ د وحي په وجه د خطاء او د هیر نه ۔ نو هر هغه څوک چه په
أَمْرِ الدِّينِ غَيْرِ ثَابِتٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيَظُنُّ أَنَّ ذَالِكَ
یو مسئله کښې د دین والي حکم کوئ ۔ چه هغه د خوږ نبيؐ نه ثابت نوي ۔ او دا گمان کوي
مُسْتَحْسَنٌ فِي بَابِ الْيَقِينِ وَأَنَّ ذَالِكَ جَامِعٌ بَيْنَ مَا جَاءَ بِهِ الرَّسُولُ
چه دا د یقین د باره خه دے ۔ او دا حکم کونکے والي ۔ چه کما د خوږ نبيؐ د حدیث او د دے مخالف
وَبَيْنَ مَا يُخَالِفُهُ مِنَ الْمَعْقُولِ فَلَا يُصِبْ مِنْ ذَالِكَ وَحَرَامٌ عَلَيْهِ التَّرَقِّي
په منځ کښې جمع اوکړه ۔ نو ده دا کار اوکړ ۔ خو په ده د غه د یقین مقام ته رسیده حرام دي ۔

إِلَى مَا حَصَلَ لَكَ إِذْ مَا جَاءَ بِهِ الرَّسُولُ كَافٍ۔ شَافٍ كَامِلٌ تَبَيَّنَ فِيهِ
حکه چه د بنده د پاره خو د رسولؐ وینا کافي۔ شافي ده۔ داخو کامله خبره ده۔
حُكْمُ كُلِّ حَقٍّ وَبَاطِلٍ۔ قَالَ اللهُ تعـ۔ وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا
په یقیني ښکاره حکم د هر حق او باطل پروت دے خدائی وائی۔ حق او باطل مه گډوئ او د کوئ حق
الْحَقَّ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ۔ وَهٰذِهِ طَرِيقَةُ السَّابِقِينَ الْأَوَّلِينَ وَهِيَ طَرِيقَةُ
او تاسو پوهیږئ۔ او دا طریقه د مخکنو او د دوئ د تابعین او د وه۔ ۔ ۔
التَّابِعِينَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ الْأَئِمَّةِ الْمُجْتَهِدِينَ وَأَكَابِرِ الْمُفَسِّرِينَ
چه څوک د مجتهدین نه د دینه روستو وو۔ د غسے لوئی مفسرین محدثین
أَعَاظِمِ الْمُحَدِّثِينَ وَعُمْدَةِ الصُّوفِيَةِ الْمُتَقَدِّمِينَ۔ كَدَاوُدَ الطَّائِي۔ وَالسَّرِيِّ السَّقَطِي
او صوفیاء کرام مخکني۔ لکه داؤد طائی۔ سری سقطی۔ معروف
وَالْمَعْرُوفِ الْكَرْخِي۔ وَجُنَيْدِ بَغْدَادِي۔ وَالشَّيْخِ سُهْرَوَرْدِي۔ وَالشَّيْخِ
معروف کرخيؒ۔ جنید بغداديؒ۔ شیخ سهروردیؒ۔ او شیخ
عَبْدِ الْقَادِرْ جِيلَانِي۔ (مُلَّا عَلِي قَارِي) كَمَا قَالَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ السَّلَامُ
عبد القادر جیلانیؒ (ملا علی قاري) لکه خو نبیؐ وائی۔ ۔ ۔
أَحْسَنُ الْكَلَامِ كَلَامُ اللهِ وَأَحْسَنُ الْهُدَى هُدَى مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
ډیر غوره کلام د خدائی او ډیر ښه هدایت د خو نبیؐ هدایت دے
وَشَرُّ الْأُمُورِ مُحْدَثَاتُهَا۔ فَمَا لَا يَدْخُلُ تَحْتَ حُكْمِ اللهِ وَحُكْمِ رَسُولِهِ
ناکاره کارونه نوے خبرے دي۔ کومے چه د خدائے په حکم کښ او د رسول کښ نه دي
فَهُوَ مِنَ الْمُحْدَثَاتِ يَجِبُ الْاِحْتِرَازُ عَنْهَا لِأَنَّ الْمُحْدَثَ بِدْعَةٌ
داخلي۔ دا نوے خبرے دي۔ چه د دینه پرهیز پکار دے۔ ځکه چه دیته بدعت وائي
وَكُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ۔ وَمَرْجِعُهُ إِلَى النَّارِ لِأَنَّ ثَوَابَ الْعَمَلِ فِي
او هر بدعت ګمراهي ده۔ او اور ته ګرځیدونکي دي۔ ځکه چه د عمل ثواب په آخرت
الْآخِرَةِ مَرْجُوٌّ مِنَ اللهِ بِالْمَغْفِرَةِ وَالرَّحْمَةِ وَالشَّفَاعَةِ مِنْ رَسُولِ
کښ د خدائی نه په امید دے۔ په بخښنه په مهربانئ او د خو نبیؐ په شفاعت
اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ۔ فَمَنْ يَعْمَلُ بِالْجُزْئِيَّاتِ الْمُخَالِفَةِ مِنَ الْكِتَابِ
حاصلیږي۔ نو څوک چه په داسے مسئلو چه بدي یا نوجوړے کړے وي۔ او قرآن حدیث

وَالسُّنَّةِ اَوْلَا يَعْلَمُ الْمُوَافَقَةَ وَالْمُخَالِفَةَ بِهِمَا فَلْيَاتُوا بِدَلِيْلِ وُجُوْبِ

مخالف دي- يا مخالفت او برابرتيائے معلومه نوي- عمل كوي د دے عمل په وجوب او ثواب

اَلْعَمَلِ عَلَيْهَا وَبِدَلِيْلِ ثَوَابِ الْعَمَلِ عَلَيْهَا وَتَعْذِيْبِ الْمُخَالِفِيْنَ عَنْهَا

او په مخالفت ئے د عذاب ثبوت د قران حديث نه راوړي- چه دا قسم مسئلے هغه دين

مِنَ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ حَتّٰى تَكُوْنَ مِنَ الدِّيْنِ الْمَنْسُوْبِ اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ

کرځي- کوم چه الله او رسول ته منسوب دے- ......

لِاَنَّ مَا لَا يَكُوْنُ بِاِذْنِ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ فَلَا يَكُوْنُ مِنَ الدِّيْنِ الْمَنْسُوْبِ

حکه چه کومے مسئلے چه د الله رسول په حکم نه وي- نو دا د دين مسئلے نه دي- ....

اِلَى اللّٰهِ- كَمَا قَالَ اللّٰهُ "اَمْ لَهُمْ شُرَكَاءُ شَرَعُوْا لَهُمْ مِنَ الدِّيْنِ مَا لَمْ

.... خدائي والي- خو وړے د دوئي د پاره شريکان دي- چه د دوئي د پاره داسے

يَاْذَنْ بِهِ اللّٰهُ وَاتَّخَذُوْا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَمَّا

مسئلے جوړوي- چه په هغے د خدائي اجازت نوي- او دوئي عالمان عابدان د خدائے

اَلْخَاتِمَةُ فِيْ بَيَانِ نَظَائِرِهَا- فَنَظَائِرُ الْمُوَافِقِ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ اَحْكَامُ

نه سوا اربابان کرځوي- هر چه خاتمه ده- نو دا په بيان د مثالونو کښ دے- نو چه د قران حديث

الصَّلٰوةِ وَالزَّكٰوةِ وَالصَّوْمِ وَالْحَجِّ وَالنِّكَاحِ وَالطَّلَاقِ وَاَكْثَرُ اَحْكَامِ

موافق دي- هغه لکه د مانځه- زکوٰة- روژے- حج- نکاح- او طلاق مسئلے شوے او ډير

الْكُتُبِ الْمُتَدَاوِلَةِ مُوَافِقٌ بِالْكُتُبِ وَالسُّنَّةِ وَالْاِجْمَاعِ وَالْقِيَاسِ فَهٰذِهِ

حکمونه د رواج شوي کتابونو مسئلے د قران حديث موافق دي- او د اجماع او قياس برابر

الْمَسَائِلُ كُلُّهَا مَعْمُوْلَةٌ مَقْبُوْلَةٌ بِالرَّاْسِ وَالْعَيْنِ وَلَا عُذْرَ وَلَا حِيْلَةَ

دي- دا ټولے مسئلے زير عمل او قبولے دي په سر سترګو- او د دے په منلو کښي انکار

فِيْ قَبُوْلِهَا وَتَعْمِيْلِهَا فَلَوْ فَرَضْنَا مَسْئَلَةً مِنَ الْمَسَائِلِ مُخَالِفَةً مِنَ

نه شي کيدے- پس که مونږ داسے مسئله فرض کړه- چه د قران حديث نه مخالفه وي- او د

الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ غَيْرَ مَطْعُوْنٍ وَلَا مَنْسُوْخٍ فَالْعَمَلُ بِالْقُرْاٰنِ وَالْحَدِيْثِ

قران حديث حکمونه منسوخ نه دي- نو په قران حديث عمل واجب دے --- او

وَاجِبٌ وَلَازِمٌ بِقَوْلِ اللّٰهِ وَقَوْلِ رَسُوْلِهِ الْمَذْكُوْرِ فِي الْفَصْلِ الْاَوَّلِ

ضروري دے- حکم چه خدائي وائي- دا په اول فصل کښ ذکر دي- ......

مِنَ الْمُقَدِّمَةِ وَفِي عَمَلِهَا ثَوَابٌ اَلثَّابِتُ بِقَوْلِ اللهِ تَعَ وَقَوْ رَسُوْلِهِ
دَ مقدمې - او دَ دے په عمل کښې ثواب دے - او چه دَ الله او دَ رسول په وینا چه په
اَلْمَذْكُوْرُ فِي الْفَصْلِ الثَّانِيْ مِنَ الْمُقَدِّمَةِ - وَفِي الْمُخَالَفَةِ تَعْذِيْبٌ
دوهم فصل کښې ذکر دے - دَ مقدمې ثابت دے - او دَ دے په مخالفت کښې عذاب ثابت دے
ثَابِتٌ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ الْمَذْكُوْرُ فِي الْفَصْلِ الثَّالِثِ مِنْهَا وَفِي
په قرآن حدیث کوم چه په دریم فصل کښې ذکر دے - او دَ هغې مسئلو نه پریخودو
تَرْكِ الْعَمَلِ بِالْجُزْئِيَّاتِ الْمُخَالِفَةِ لَيْسَ وَعِيْدٌ وَلَا تَعْذِيْبٌ فِي الْكِتَابِ
کښې چه دَ قرآن حدیث مخالفې وی - نه عذاب او نه سزا ده - په قرآن حدیث کښې
وَالسُّنَّةِ وَلَيْسَ فِي عَمَلِهَا وُجُوْبُ الْعَمَلِ وَلَا ثَوَابٌ مَوْعُوْدٌ فِي الْكِتَابِ
او نه دَ دے په کولو کښې وجوب دے - او نه ئې ثواب په قرآن او حدیث کښې ثابت
وَالسُّنَّةِ - فَمَنْ يَرْجُوْا لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِرَبِّهِ
دے پس څوک چه دَ خدائ دَ ملاقات امید لری - نو نیک عمل دِ اوکی او دَ خدائ سره دِ
اَحَدًا" = فَاَمَّا النَّظَائِرُ وَالْمَسَائِلُ الْمُخَالِفَةُ مِنَ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ
څوک نه شریکوی نه جوړ وی - پس هغه مسئلې چه دَ قرآن حدیث نه مخالفې وی - لکه موټک
كَمَسْئَلَةِ جَوَازِ الْكَفِّ فِي الدُّرِّ الْمُخْتَارِ فِي بَابِ الصَّوْمِ فَانْظُرْ فِيْهِ وَكَذَا
وَهَل په درمختار کښې دَ روژے په باب کښې لیکے دے - او دَ غسے په ورغوی منی ایستل
اَلْاِسْتِمْنَاءُ بِالْكَفِّ وَاِنْ كُرِهَ لِحَدِيْثِ نَاكِحُ الْيَدِ مَلْعُوْنٌ وَلَوْ خَافَ
اګرکه دا مکروه کار دے - چه دَ لاس موټک وهونکے لعنتی دے - اګرکه دَ زنا
الزِّنَا وَيُرْجٰى اَنْ لَا وَبَالَ عَلَيْهِ مُخَالِفَةً مِنْ قَوْلِهٖ تَعَ" وَالَّذِيْنَ هُمْ
نه یریګی - او دَ دے امید لری - چه په ده به عذاب نه وی - او دا خو دَ دے فرمان نه مخالف
لِفُرُوْجِهِمْ حَافِظُوْنَ" حَافِظُوْنَ عَنِ الْحَرَامِ" اِلَّا عَلٰى اَزْوَاجِهِمْ" اَیْ
دے چه هغه خلق چه دَ پردے اندامونه محفوظ ساتی دَ حرامو نه - مګر دَ خپلو ببیانو سره
مِنْ زَوْجَاتِهِمْ" اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ" فِيْ اِتْيَانِهِنَّ
کو روا جائز دے - یا هغه وینځې چه دَ ده په ملکیت کښې وی - په یکښې ملامتیا نشته پس
فَاُولٰئِكَ هُمُ الْعَادُوْنَ الْمُتَجَاوِزُوْنَ اِلٰى مَا لَا يَحِلُّ لَهُمْ (جلالین)
څوک چه دَ دینه علاوه چه ببیانې او وینځې دی - په نور اندامونو استعمالوی - لکه موټک نه پس دا ګڼو نه او برسیره وتکی

[illegible]

وَفِيهِ دَلِيلٌ عَلَى أَنَّ الْاِسْتِمْنَاءَ بِالْيَدِ حَرَامٌ وَهُوَ قَوْلُ أَكْثَرِ الْعُلَمَاءِ.
د دینه ثابته شوه- چه موټک حرام دے- او په اکثر علماء قائل دی-
سُئِلَ عَطَاءٌ عَنْهُ فَقَالَ مَكْرُوهٌ- سَمِعْتُ أَنَّ قَوْمًا يُحْشَرُونَ وَ
د عطاء نه د دے سوال اوشه- ده وے دا مکروه کار دے- ده وے ما اوریدلی دی- چه څه
أَيْدِيهِمْ حَبَالَى- فَأَظُنُّ أَنَّهُمْ هَؤُلَاءِ- وَقَالَ سَعِيدُ بْنُ جُبَيْرٍ
خلق به په محشر کښ راجمع شی- او د دوئی لاسونه به بلاربه وی- نو ګمان کوم دے چه دا
عَذَّبَ اللهُ أُمَّةً كَانُوا يَعْبَثُونَ بِمَذَاكِيرِهِمْ (خازن) وَأَيْضًا
به هغه موټک وهونکی وی- او سعید د جبیر زوئ وے چه خدائی به هغه خلقو
مُخَالِفٌ مِنَ الْحَدِيثِ الَّذِي ذَكَرَ صَاحِبُ الدُّرِّ الْمُخْتَارِ نَاكِحُ
ته عذاب وی- څوک چه په اندامو سره لوبے کوی- او دا کار د هغے حدیث مخالف
الْيَدِ مَلْعُونٌ- وَأَيْضًا فِي الْحَدِيثِ أَنَّ يَدَ نَاكِحِ الْيَدِ مِثْلُ امْرَأَةٍ
دے چه صاحب د درمختار ذکر کړے چه د موټک په خاوند لعنت دے- او بل حدیث دے-
حَامِلَةٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَمَنْ رَأَى الْحُسْنَ فِي مُخَالِفَةِ الْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ-
چه موټک خاوند به د بلاربے زنے هسے وی- د قیامت په ورځ- نو څوک چه د قرآن
فَهُوَ عَاصٍ مِنَ اللهِ وَرَسُولِهِ- وَمَنْ يَعْصِ اللهَ وَرَسُولَهُ يُدْخِلْهُ
حدیث په خلاف کښ ښه وائی وینی- نو دے د خدائے او د هغه د رسول نافرمان دے- او دا
نَارًا خَالِدًا فِيهَا وَلَهُ عَذَابٌ مُهِينٌ- فَانْظُرْ إِلَى مَنْ يَحْكُمُ بِجَوَازِ
قسم شخص به اور ته داخل کړے شی چه همیشه به په کښ وی- او د ده د سپکونکے عذاب دے- او ته لږ هغه
هَذَا الْأَمْرِ مَعَ وُجُودِ الْوَعِيدِ فِي كَلَامِ اللهِ وَفِي كَلَامِ الرَّسُولِ
جانته اوګوره- چه د دے د جواز حکم ورکوی- سره د عذاب په قرآن او په حدیث کښ- خو په ده
فَلَهُ اللَّعْنُ وَمَنْ عَمِلَ بِحِلِّهِ الْجَنَابَةَ يَحْدُثُ مِنْهُ مَرَضٌ لَا يَقْدِرُ
لعنت دے- او څوک چه په دے قسم مسئلو عمل کوی- نو دے به په داسے ناجوړه شی چه ځپلے ښځے
عَلَى وَطْيِ زَوْجَتِهِ فِي الدُّنْيَا- وَيَكُونُ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْعَادِيِينَ
سره به په دنیا کښ کور وانشی کولے- او په آخرة کښ به د نافرمانو نه وی- او د ده لاس
وَيَدُهُ مِثْلُ امْرَأَةٍ حَامِلَةٍ فَمَنْ حَكَمَ بِجَوَازِ الْكَفِّ لَا يَقْدِرُ عَلَى خَلَاصٍ
د بلاربے زنے هسے وی- نو څوک چه حکم کوی- د موټک په جواز باندے- دے به دا د

فَاعِلِهٖ مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ وَلَا مِنْ لَعْنِ رَسُوْلِهٖ - وَنَظِيْرُ الثَّانِيْ قَوْلُ الْكَيْدَانِيْ

د موټلك خاوند د خدائ د عذاب او د رسول د لعنت نه خلاص كي - او دويم مثال

فِيْ بَابِ الْحَرَامِ وَالْإِشَارَةُ بِالسَّبَّابَةِ كَاَهْلِ الْحَدِيْثِ وَذِكْرُ تَعْرِيْفِ

د خلاصي كيداني وينا ده - چه د حرامو په باب كښي ليكلي - چه په مسبحه گوته اشاره حرامه ده - لكه

الْحَرَامِ فِيْ اَوَّلِ كِتَابِهٖ - اَلْحَرَامُ مَا ثَبَتَ فِيْهِ النَّهْيُ وَلَا مُعَارِضَ فِيْهِ

چه اهل حديث كوي - او ده د كتاب په اول كښي ليكلي دي - چه حرام هغه دے - چه په كښي

فَحُكْمُ حُرْمَةِ الْإِشَارَةِ مُخَالِفٌ عَنْ تَعْرِيْفِهٖ لِعَدَمِ النَّهْيِ فِيْهِ مَعَ

منع راغلي وي - او د دے د خلاف حكم نه وي - نو د اشارے عدم اموائے د ده د تعريف نه مخالف دے - ځكه چه

ثُبُوْتِهَا مِنَ الْاَحَادِيْثِ الْمَذْكُوْرَةِ فِي الْكُتُبِ الَّتِيْ اتَّفَقَ الْاُمَّةُ

په كښي منع نه ده راغلي - او ثبوت ئے د احاديثو نه شته - چه په صحيح كتابونو كښي احاديث كښي

بِصِحَّتِهَا وَكُلُّ الْاَحَادِيْثِ مَرْوِيَّةٌ بِرِوَايَاتِ الثِّقَاتِ - وَصَرَّحَ مُحَمَّدٌ

موجود دي - او دا احاديث ښه نيكانو روايت كړيدي - او امام محمد په خپل كتاب موطا كښي

فِي الْمُوَطَّا - رَاٰنِيْ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ وَاَنَا اَعْبَثُ بِالْحَصٰى فِي الصَّلٰوةِ

صفا ليكلي - چه عبد الله بن عمر رض د كانړو سره په لوبو په مانځه كښي وليدم - نو چه ځه ازگار شوم

فَلَمَّا انْصَرَفْتُ نَهَانِيْ وَقَالَ اصْنَعْ كَمَا يَصْنَعُ رَسُوْلُ اللّٰهِ فَقُلْتُ

نو ما ته ئے منع ئے وكړه - لكه چه خو بنى كړي وو - ما وئے هغه ښه كړي وو - ده او وے - چه په تشهد

وَكَيْفَ يَصْنَعُ رَسُوْلُ اللّٰهِ - قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ اِذَا جَلَسَ فِي

كښيني - نو ښے ورغوي په ښي ځون كيده - او گوتے بندے كړے وے - او په هغه گوته اشاره اوكړه -

الصَّلٰوةِ وَضَعَ كَفَّهُ الْيُمْنٰى عَلَى الْفَخِذِ الْيُمْنٰى وَقَبَضَ اَصَابِعَهٗ كُلَّهَا

حه د څنگ گوتے په خوا كښي ده

وَاَشَارَ بِاِصْبَعِهِ الَّتِيْ تَلِي الْاِبْهَامَ وَوَضَعَ كَفَّهُ الْيُسْرٰى عَلَى الْفَخِذِ

د غسے كينه ور غوي په كينه ځون

الْيُسْرٰى - قَالَ مُحَمَّدٌ وَبِصُنْعِ رَسُوْلِ اللّٰهِ نَاْخُذُ وَهُوَ قَوْلُ اَبِيْ حَنِيْفَةَ

محمد وائي چه مونږ او ابو حنيفه رح په دے عمل كوو - او په جزيل المواهب

(موطا) وَفِيْ جَزِيْلِ الْمَوَاهِبِ كُلُّ قَوْلٍ لَا دَلِيْلَ عَلَيْهِ فَهُوَ مَرْدُوْدٌ

كښي دي چه هره هغه وينا چه په هغې دليل نوي - هغه به نه منلے - نو د كيداني وينا مردوده ده -

فَقَوْلُ الْكَيْدَانِيِّ مَرْدُوْدٌ ـ لِأَنَّهٗ لَيْسَ لَهٗ دَلِيْلٌ ـ وَفِي الْمَعْدَنِ

او په معدن د كنز په شرح كښې دي ـ چه د یاتحه په سنتو كښې اشاره ده ـ

شَرْحِ الْكَنْزِ وَمِنْ سُنَنِ الصَّلٰوةِ رَفْعُ السَّبَّابَةِ فِي التَّشَهُّدِ عِنْدَ

په مسواكه گوته په تشهد كښې د أشهد أن لا إله په مقام باندئ ـ د امام ابوحنيفه رح

قَوْلِهٖ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رح وَمُحَمَّدٍ رح وَشَافِعِيِّ رح

د محمد رح شافعي رح په نزد باندئ ـ رحمهم الله ـ

رَحِمَهُمُ اللهُ ـ وَفِي الْكِفَايَةِ وَالْمُحِيْطِ قِيْلَ رَفْعُ السَّبَّابَةِ الْيَدِ الْيُمْنٰى فِي

او په كفايه او محيط كښې دي ـ چه په تشهد كښې به د ښي لاس مسواكه گوته

التَّشَهُّدِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رح وَمُحَمَّدٍ رح وَالشَّافِعِيِّ رح مِنَ السُّنَنِ ـ فَقَوْلُ

په نزد د ابوحنيفه رح محمد رح شافعي رح پورته كوي ـ دا يو سنت دے ـ نو د كيداني

الْكَيْدَانِيِّ مُخَالِفٌ مِنْ حَدِيْثِ رَسُوْلِ اللهِ وَقَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَلَيْسَ

وينا خالف ده ـ د حديث د خوږ نبي ـ او د وينا د ابوحنيفه رح نه ـ او د كيداني

لَهٗ دَلِيْلٌ يَعْتَمِدُ عَلَيْهِ =: اِسْتِفْتَاءٌ مِنْ مُفْتِيْ مَكَّةَ الْمُكَرَّمَةِ =:

سره اعتباري دليل نشته =: د مكے د مفتي نه سوال =:

مَا قَوْلُكُمْ يَا عُلَمَاءَ الْأَحْنَافِ فِي الْإِشَارَةِ بِالسَّبَّابَةِ عِنْدَ إِمَامِنَا

تاسو د مكے احنافو عالمانو د مسواكے گوتے په اشاره كښې څه وايئ ـ چه دا سنت ده

الْأَعْظَمِ ـ أَهِيَ سُنَّةٌ أَمْ مَمْنُوْعَةٌ ـ بَيِّنُوْا بِالدَّلِيْلِ تُؤْجَرُوْا ـــ

كه منع ده ـ دا خبره په دليل بيان او كړئ ـ چه ثواب مو اوشي ـ

اَلْجَوَابُ =: اَلْإِشَارَةُ بِالسَّبَّابَةِ مَسْنُوْنَةٌ لِفِعْلِهٖ رَسُوْلِ اللهِ ـ

جواب =: داسے اشاره سنت ده ـ ځكه چه داسے خوږ نبي كړيده ـ او د غسے

وَقَالَ مِثْلَ هٰذَا الْكَمَالُ ابْنُ الْهُمَامِ ـ وَهٰذِهِ الْمَسْئَلَةُ شَهِيْرَةٌ

كمال ابن الهمام هم وائي ـ ........ او دا خو د نور نه هم

أَضْوَأُ مِنَ الشَّمْسِ الضِّيَاءِ =: (عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السِّرَاجُ الْحَنَفِيُّ الْمَكِّيُّ)

روڼه خبره ده ـ د ستخط د مفتي عبدالله بن عبدالرحمن سراج حنفي چه د مكے مفتو دے

فَفِيْ عَمَلٍ بِالْحَدِيْثِ قَوْلُ اللهِ شَاهِدٌ ـ "وَمَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ"

نو په حديث عمل خدائے په د حكم ثابت دے ـ چه چا د رسول تابعداري اوكړه ـ نو ده د خدائے تابعداري اوكړه ـ

فَعَامِلُ قَوْلِ الْكَيْدَانِيْ لَيْسَ لَهٗ ثَمَرَةٌ اِلَّا الْمُخَالَفَةُ مِنْ قَوْلِ الرَّسُوْلِ
او د کیدانی په وینا عمل خو د رسول د وینا نه مخالفت او د خدائے نه جوړے او د دې
مِنْ قَوْلِ اللّٰهِ تعـ "وَلَهٗ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ". وَاَيْضًا مَسْئَلَةُ اُجْرَةِ الْمُزَنِيَّةِ
خلقو د پاره سپکونکے عذاب دے ...... د غسے د زنا اجرة په باب اجارے
فِيْ بَابِ اِجَارَةِ الْفَاسِدَةِ مِنَ الْجَلَبِيْ - وَمَا اَخَذَتْهُ الزَّانِيَةُ اِنْ كَانَ
فاسدے کښې د چلپي کتاب نه - دے وائی - چه هغه څه چه دا په زنا اجرة
لِعَقْدِ الْاِجَارَةِ فَهُوَ حَلَالٌ طَيِّبٌ عِنْدَ الْاَعْظَمِ رح - فَهٰذِهِ الْمَسْئَلَةُ مُخَالِفَةٌ
اخلی - کړ دائے د اجارے په طریقه اخلی - نو دا حلال پاک دے - په نزد د امام اعظم رح - نو دا
عَنِ الْاَحَادِيْثِ الَّتِيْ وَرَدَتْ بِحُرْمَةِ مَهْرِ الْبَغِيِّ فِيْ جَمِيْعِ الصِّحَاحِ بِاَوْضَحِ
مسئله د احادیثو نه خلاف ده - کوم چه د زنا په اجرة کښې راغلیدی - کوم چه په
الْعِبَارَةِ وَهِيَ اَيْضًا مُخَالِفَةٌ مِنَ الْكِتَابِ لِاَنَّهٗ يَاْمُرُ بِاِتِّبَاعِ الرَّسُوْلِ
صحیح کتابونو کښې موجود دی - او دا مسئله د قران نهم مخالفه ده - ځکه چه قران
لَا بِاِتِّبَاعِ الْجُزْئِيَّاتِ الْمُخَالِفَةِ بَلْ لَا يَلْتَفِتُ اِلَيْهَا بِالْعَمَلِ وَلَا بِغَيْرِ
خو د رسول د تابعدارئ حکم کوی - نه د تشو په نامه مسئلو - او بیا لا چه مخالفے
الْعَمَلِ لَا فِي الْقُرْاٰنِ وَلَا فِي الْحَدِيْثِ - فَلَا يَنْبَغِيْ لِعَاقِلٍ مُّسْلِمٍ اَنْ
وی - بلکه دلته خو کا نه په عمل نه دی پکار - او نه هسے داخو نه په قران کښې شته - لهٰذا
يَتْرُكَ عَمَلَ الْقُرْاٰنِ وَالْحَدِيْثِ وَيَعْمَلَ بِالْجُزْئِيَّاتِ الَّتِيْ تَكُوْنُ مُخَالِفَةً
نه په حدیث کښې - نو اختیار مسلمان ته نه دی پکار - چه په قران او په حدیث عمل پریږدی
مِنْهُمَا. بَلْ قَالَ اللّٰهُ تعـ "وَمَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ
او په دے قسم مخالفو مسئلو عمل اوکی - خدائے وائی - چه څوک د خو د نبی خلاف کوی - پس د دے
لَهُ الْهُدٰى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ
چه ورته ښکاره شی هدایت - او د مومنانو د لارے نه بله لار کوی - نو په دے خوبه دوزخ ته داخل
وَسَآءَتْ مَصِيْرًا". وَاَيْضًا كِتَابَةُ الْقُرْاٰنِ فِيْ خِزَانَةِ الْمُفْتِيِّيْنَ بِدَمِ
شی - او دا ناکاره د ګرځیدو ځائے دے - او د غسے د قران لیکل د پوز په وینو د نکے
الرُّعَافِ مُخَالِفَةٌ مِنَ الْقُرْاٰنِ "لَا يَمَسُّهٗ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ" - وَاَيْضًا
وینه - دا مخالفه مسئله ده - د قران نه - چه خدای وائی - قرآن به صرف پاکان مسه کوی -

مُخَالِفَۃٌ مِّنَ الْحَدِیْثِ لَا یَمَسُّ الْقُرْاٰنَ اِلَّا الْمُطَهَّرُوْنَ - وَاَیْضًا مُخَالِفٌ

دغسې دا د حدیث مخالفه ده - چه قرآن به صرف پاکان مسه کوی - او دغسې دا مسئله

مِّنْ جَمِیْعِ الْکُتُبِ الْمُتَدَاوَلَۃِ اَنْ لَّا یَجُوْزُ مَسُّ الْقُرْاٰنِ لِلْمُحْدِثِ وَالْجُنُبِ

د ټولو مروجو کتابو مخالفه ده - چه بے اودسه به قرآن نه مسه کوی - او د لوئے بے اودسی

وَالْحَائِضِ وَالنُّفَسَاءِ فَکَیْفَ یَجُوْزُ کِتَابَۃُ الْقُرْاٰنِ بِالدَّمِ الَّذِیْ نَجِسٌ

خاوند - حائضه - د ځلو مجتی ښځه - نو د قرآن لیکل به په پلیته وینه څرنګه جائز شی

مَعَ اَنَّ اِلْقَاءَ الْقُرْاٰنِ فِی النَّجَاسَۃِ کُفْرٌ - کَمَا صَرَّحَ بِہٖ فِیْ شَرْحِ الْعَقَائِدِ

سره د دے چه قرآن په پلیتئ کښ غورزول کفر دے - لکه دا حکم په شرح عقائد کښ دے -

وَاَیْضًا مَسْئَلَۃُ حُرْمَۃِ الْجَهْرِ بِالْاٰمِیْنَ فِی الْکَیْدَانِیْ لِاَنَّ الْحَرَامَ

دغسے په زوره امین ویلو ته حرام ویل په کیدانی کښ دی - ځکه چه حرام منع غواړی -

مَا ثَبَتَ النَّهْیُ فِیْهِ وَلَا نَهْیَ فِیْهِ فِیْ جَهْرِهٖ بَلِ الْاَحَادِیْثُ فِیْ جَهْرِهٖ

او د امین په زوره منع نه ده راغلے - بلکه د جهر ډیر احادیث دی - دومره چه د امین

کَثِیْرَۃٌ - غَایَۃُ مَا فِی الْبَابِ تَرْجِیْحُ حَدِیْثِ الْاِخْفَاءِ عِنْدَ اَبِیْ حَنِیْفَۃَ

په پټه ویلو احادیث ابو حنیفه رح د جهر نه غوره ګنړی - دغسے د رکوع په حالت کښ

مِنْ اَحَادِیْثِ الْجَهْرِ - وَاَیْضًا حُرْمَۃُ رَفْعِ یَدَیْنِ عِنْدَ الرُّکُوْعِ

لاس پورته کول - ځکه چه دلته هم منع نشته - د شارع نه . . . . . . .

لِاَنَّ النَّهْیَ غَیْرُ مَوْجُوْدٍ مِّنَ الشَّارِعِ مَعَ کَثْرَۃِ الْاَحَادِیْثِ بِرَفْعِهٖ

او ډیر احادیث د دے پورته کول وائی - خو دا مسئله ابو حنیفه رح

وَهٰذِهٖ مِثْلُ الْجَهْرِ دَلِیْلُ تَرْجِیْحِ اَبِیْ حَنِیْفَۃَ تَرْکُہٗ ثَابِتٌ مِّنْ بَعْضِ

نه پورته کول د پورته کولو نه غوره ګنړی - او که بعض اصحابو پریخے

الصَّحَابَۃِ لٰکِنْ تَرْکُ الصَّحَابَۃِ غَیْرُ نَاسِخٍ لِفِعْلِ الرَّسُوْلِ وَاَیْضًا

وی - نو دا خو د خود نبی فعل منسوخ کولے نه شی - او دغسے

مَسْئَلَۃُ وُجُوْبِ سَجْدَۃِ السَّهْوِ بِمُجَرَّدِ الْقُعُوْدِ فِی الرَّکْعَۃِ الْاُوْلٰی

په ناکوکینا ستو په اول یا دریم رکعت کښ د سجده سهوه وجوب دا

اَوْ فِی الرَّکْعَۃِ الثَّالِثَۃِ مُخَالِفَۃٌ مِّنْ اَحَادِیْثِ جَلْسَۃِ الْاِسْتِرَاحَۃِ

. . . . . . . . . . . . . . . .

مخالف دے - د احادیثو د استراحت نه -

لِاَنَّ جَلْسَتَهَا سُنَّةٌ بِمُوجِبِهَا وَ سُجُوْدُ السَّهْوِ يُوْجَبُ مِنْ تَرْكِ الْوَاجِبِ

ځکه چه دا کیناسته سنت دی - دا احادیثو په وجه - او سجده سهو خو هله واجبه کړی

لَا مِنْ تَرْكِ الْاَفْضَلِ غَايَةُ مَا فِي الْقِيَامِ بِصَدَدٍ وَرِقْدَمِيهِ رَاجِحٌ

چه واجب پریکدی - نه په پریخودو د غوره کار باندی - ډیر نه ډیر د

مِنْ اَحَادِيْثِ الْاِسْتِرَاحَةِ عِنْدَ اَبِي حَنِيْفَةَ رح - فَكَيْفَ يَجِبُ سَجْدَةُ

په نیغه د استراحت نه امام ابو حنیفه رح غوره گنړی - نو سجده د غوره په پریخودو

السَّهْوِ بِتَرْكِ الْاَفْضَلِ - وَاَيْضًا مَسْئَلَةُ الْعِمَامَةِ لِلْاَشْرَافِ فِي

څرنګ ده - دغسې د اشرافو د پاره په کفن کښ پټکی د سنت کفن مخالف دے -

الْكَفَنِ مُخَالِفَةٌ مِّنْ سُنَّةِ الْكَفَنِ - لِاَنَّ كَفَنَ رَسُوْلِ اللّٰهِ ثَلَاثَةُ

ځکه چه د خوږ نبی کفن درې جامې وو - پټکی پکښ نه وو - نو پټکی د سنت پوره کولو نکی شه

اَثْوَابٍ لَا عِمَامَةَ فِيْهِ فَاِحْدَاثُ الْعِمَامَةِ رَافِعٌ لِلسُّنَّةِ وَ فِي

او دلته په اکثرو متنونو کښ سنت کفن درې جامې دی - . . . . . . . . . .

اَكْثَرِ الْمُتُوْنِ سُنَّةُ الْكَفَنِ ثَلَاثَةُ اَثْوَابٍ لِلرَّجُلِ فَالْعَمَلُ بِا

د سړی د پاره - . . . . . . . . . . . . . . . . .

السُّنَّةِ سُنَّةٌ - وَالْعَمَلُ بِالْمُحْدَثِ بِدْعَةٌ - وَاَيْضًا اَلتَّلَفُّظُ بِالنِّيَّةِ

نو په سنت عمل سنت دے - او د ځان نه په جوړه عمل بدعت دے - دغسې د نیت په ژبه

بِدْعَةٌ لِاَنَّهَا عِبَارَةٌ عَنْ قَصْدِ الْقَلْبِ فَقَطْ وَلَا يُوْجَدُ التَّلَفُّظُ

ویل بدعت دے - ځکه نیت د زړه اراده ده او بس - او دا په ژبه ویل نشی بیا

بِهَا فِي الْقُرُوْنِ الثَّلَاثَةِ فَالتَّلَفُّظُ بِهَا بِدْعَةٌ وَهُوَ رَافِعُ السُّنَّةِ

مونږ په دریوا بهترو زمانو کښ - نو په ژبه نیت بدعت دے - او په دے سنت پوره

وَقَدْ يَكُوْنُ رَافِعُ الْفَرْضِ اِذَا اكْتَفٰى بِالتَّلَفُّظِ وَغَفَلَ عَنْ قَصْدِ

شه - او کله کله خو په دے فرض پوره شی - چه یواځې په ژبه اووائی - او د زړه اراده

الْقَلْبِ فَهٰذَا الْمُحْدَثُ رَفَعَ الْفَرْضَ فَلَا يَصِحُّ النِّيَّةُ اَصْلًا - وَهٰذَا

نه وی - نو دا نوے کار فرض پوره کی - نو نیت اجوړ او نه شی . . . . .

مَرْدُوْدٌ بِحَدِيْثِ عَائِشَةَ - وَالرَّدُّ بِمَعْنٰى بَاطِلٍ وَهٰذَا الْحَدِيْثُ

او دا باطل دے - د عائشې رض حدیث په وجه چه مردود باطل ته وائی - او دا حدیث په

مَوْجُوْدٌ فِي الْمُسْلِمِ وَالنَّوَوِيْ - وَاَعْجَبُ الْحَوَادِثِ حُكْمُ بَعْضِ الْعُلَمَاءِ

په مسلم او نووي کښې موجود دے۔ او ډېر عجيبه لوئے کار په بار بار لوئې ګناه کونکي جنازه

بِتَرْكِ جَنَازَةِ الْمُصِرِّ عَلَى الْكَبَائِرِ - كَزَانِ الْمُصِرِّ عَلَى الزِّنَا ثُمَّ مَاتَ

نه کول دي . . . . . . . . لکه زناکار چه پرله پسې زنا کوي۔ او په حالت

فِيْ ذَالِكَ - فَاِنَّ هٰذَا الْحُكْمَ مُخَالِفٌ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ

کښې مړ شي۔ دا حکم د فرمان د خود نبي ؐ نه مخالف دے . . . . . . . . . .

اَبِيْ ذَرٍّ قَدْ اَتَيْتُ النَّبِيَّ وَعَلَيْهِ ثَوْبٌ اَبْيَضُ وَهُوَ نَائِمٌ - ثُمَّ اَتَيْتُ

د ابو ذر نه روايت دے۔ ده وې۔ چه خود نبي ؐ سخته راغلم۔ نو دے په سپينه جامه کښې

وَقَدْ اِسْتَيْقَظَ - فَقَالَ مَا مِنْ عَبْدٍ قَالَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ

او ده ؤو۔ چه بيا راغلم نو دوئ ويښ شوي ؤو۔ نو دوئ اووے۔ چه هيڅ بنده دا نشته

قُلْتُ وَاِنْ زَنَا وَاِنْ سَرَقَ قَالَ وَاِنْ زَنَا وَاِنْ سَرَقَ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ

چه کلمهٔ طيبه وائي۔ مګر جنت ته به داخل شي۔ ما ورته اووے۔ چه اګر که زناکار او غل وي

وَقَالَ فِي الثَّالِثَةِ عَلٰى رَغْمِ اَنْفِ اَبِيْ ذَرٍّ (مشكوة) فَعُلِمَ مِنْ هٰذَا الْحَدِيْثِ

درے کرته ئې داسې اووے۔ دوئ دا ته په دريم ګزار اووې۔ چه اګر که د ابو ذر پوزه په خاورو

اَنَّ مُرْتَكِبَ الْكَبِيْرَةِ لَيْسَ بِكَافِرٍ - لِاَنَّ دُخُوْلَ الْجَنَّةِ عَلَى الْكَافِرِيْنَ

لګوه شي۔ نو د دې نه معلومه شوه۔ چه د لوئے ګناه کونکے کافر نه دے۔ ځکه چه جنت به کافرو نه

حَرَامٌ - وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رض قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

حرام دے۔ . . . او د ابو هريره نه روايت دے۔ ده وې۔ چه خود نبي ؐ وے۔ چه په تاسو

اَلْجِهَادُ وَاجِبٌ عَلَيْكُمْ مَعَ كُلِّ اَمِيْرٍ بَرًّا كَانَ اَوْ فَاجِرًا وَاِنْ عَمِلَ الْكَبَائِرَ

جهاد واجب دے۔ د هر امير سره نيک وي او که بد وي۔ اګر که لوئې ګناه هم نه کوي۔ . .

وَالصَّلٰوةُ وَاجِبَةٌ عَلَيْكُمْ خَلْفَ كُلِّ مُسْلِمٍ بَرًّا كَانَ اَوْ فَاجِرًا - وَاِنْ

او مونځ پتاسو واجب دے۔ په هر مسلمان پسې که نيک وي۔ او که ګناهګار وي۔ اګر که

عَمِلَ الْكَبَائِرَ - وَعَدَمُ الْجَنَازَةِ عَلَى الْمَدْيُوْنِ كَانَ لِلزَّجْرِ - وَهٰكَذَا عَلَى

لوئې ګناه هم نه کوي۔ او که خود نبي ؐ به قرضدار جنازه نه ده کړے۔ نو دا زورنه ده۔

الْمَحْدُوْدِ بِحَقِّ الزِّنَا - وَقَالَ اَحْمَدُ رح لَمْ يُصَلِّ عَلَيْهِ الْاِمَامُ وَغَيْرُهٗ

د غسې د زنا په حد کښې په مړ هم۔ او امام احمد ؒ وائي۔ لوئې عالم دې په جنازه نه کوي۔ او نور دې

يُصَلِّي بِكُلِّ مُرْتَكِبِ الْكَبَائِرِ جَنَازَةً۔ فَعَدَمُ الْجَنَازَةِ عَلٰى مُرْتَكِبِ الْكَبَائِرِ
جنازه نکوی۔ او نور دِ په جنازه کوی۔ نو په لوئ گناه کونکی جنازه نه کول
خِلَافُ الْحَدِيْثِ۔ اُنْظُرْ مُسْلِمْ صفه ٦٩ جلد (٢) وَقَالَ اَبُوْحَنِيْفَةَ وَلَا
دَ حدیث نه خلاف خبره دَه۔ او امام ابوحنیفهؒ وائی۔۔۔۔۔۔
نُكَفِّرُ مُسْلِمًا بِذَنْبٍ مِنَ الذُّنُوْبِ وَاِنْ كَانَتْ كَبِيْرَةً اِذَا لَمْ يَسْتَحِلَّهَا
چه مونږ یو مسلمان په لوئ گناه نه شو کافر کولے۔ چه دا حلال نه گنړی او په
وَلَا يَزِيْلُ عَنْهُ اِسْمُ الْاِيْمَانِ (فقه اکبر) فَكُفْرُ مُرْتَكِبِ الْكَبِيْرَةِ مَذْهَبُ
دَ ایمان نه اُخئ۔۔۔۔۔۔۔ نو دَ لوئ گناه کونکی تکافر خوارج فرقه وائی۔
الْخَوَارِجِ وَمَذْهَبُ الْمُعْتَزِلَةِ اِنَّهٗ بَيْنَ الْكُفْرِ وَالْاِيْمَانِ۔ وَمَذْهَبُ
او معتزله وائی۔ دے دَ کفر او ایمان په مینځ کښی دے۔ او اَهل سنت
اَهْلِ السُّنَّةِ اَنَّهٗ مُؤْمِنٌ فَاسِقٌ۔ وَفِي الْعَقَائِدِ۔ وَالْكَبِيْرَةُ لَاتُخْرِجُ الْعَبْدَ
ورته مؤمن وائی۔ خو فاسق دَے۔ او په شرح عقائد کښی دی۔ چه لوئی
الْمُؤْمِنَ مِنَ الْاِيْمَانِ۔ لِبَقَاءِ التَّصْدِيْقِ الَّذِي هُوَ حَقِيْقَةُ الْاِيْمَانِ
گناه مؤمن بنده دَ ایمان نه نه اُباسی۔ حکه چه تصدیق خو شته۔ او دا دَ ایمان
وَلَا يُدْخِلُهٗ فِي الْكُفْرِ لِاِجْمَاعِ الْاُمَّةِ مِنْ عَصْرِ النَّبِيِّ اِلٰى يَوْمِنَا هٰذَا بِالصَّلٰوةِ
حقیقت دے۔ او دے په کفر کښ نه دَے داخل۔ په دے دَ اُمت اتفاق دے۔ دَ خود نمونځ
عَلٰى مَنْ مَاتَ مِنْ اَهْلِ الْقِبْلَةِ مِنْ غَيْرِ تَوْبَةٍ۔ وَالدُّعَاءِ وَالْاِسْتِغْفَارِ
دَ زمانے نه تر اوسه پورے دا دے چه په هغه قبیلے نه مونځ کونکی دَ جنازے مونځ شوے دے
مَعَ الْعِلْمِ بِارْتِكَابِ الْكَبَائِرِ بَعْدَ الْاِتِّفَاقِ عَلٰى اَنَّ ذٰلِكَ لَا يَجُوْزُ
اگر که بے توبے مړ وی۔ او دعا او بخښنه غوښتنه سره دَ علم نه په لوی گناهونو پس
بِغَيْرِ الْمُؤْمِنِ (شرح عقائد) وَمَا كَانَ مِنَ السَّيِّئَاتِ دُوْنَ الشِّرْكِ
اتفاق نه پدے وجه دا دَ غیر مؤمن پاره نه دی جائز۔ او هغه گناهونه چه دَ
وَالْكُفْرِ سَوَاءٌ كَانَتِ السَّيِّئَاتُ صَغِيْرَةً اَوْ كَبِيْرَةً وَلَمْ يَتُبْ صَاحِبُهَا
شرک نه او کفر نه کم وی۔ اگر که دا گناهونه واړه وی یا که لوئی۔ او دَه توبه
حَتّٰى مَاتَ مُؤْمِنًا فَاسِقًا مُصِرًّا عَلَيْهِ فَاِنَّهٗ فِي مَشِيْئَةِ اللّٰهِ اِنْ شَاءَ
نوی اُبستلے۔ تر دے چه دے مړ شی۔ نو مؤمن فاسق به وی۔ دا دَ خدائ خوښه ده۔

عَذَّبَهٗ وَاِنْ شَاءَ عَفٰى عَنْهُ وَلَمْ يُعَذِّبْهُ بِالنَّارِ اَصْلًا بِفَضْلِهٖ وَرَحْمَتِهٖ
کړي۔ او که وي عذابوي۔ او ورته په اور په خپل فضل او رحم۔ او د سفارش په
وَشَفَاعَتِهِ الشَّافِعِيْنَ (ابو المنتهٰی) وَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ شَفَاعَتِيْ لِاَهْلِ
په سفارش نه عذابوي۔ ...... او خوړ نبي ﷺ وائي۔ چه زما سفارش خو د پاره د
الْكَبَائِرِ مِنْ اُمَّتِيْ مَنْ كَذَّبَ بِهَا لَمْ يَنَلْهَا فَلَوْ اَكْفَرَ اَحَدٌ بِاِصْرَارِ الْكَبَائِرِ
لویو ګناهګارو د پاره دی۔ چه زما اُمتي وي۔ او چه د نه مني۔ نو شفاعت به نه ورکوي بالکل
فَلَا يَكُوْنُ لَهُمْ شَفَاعَةٌ اَصْلًا۔ فَثَبَتَ بِالْبَرَاهِيْنِ اَنَّ مُرْتَكِبَ
الْكَبِيْرَةِ وَلَوْ كَانَ مُصِرًّا غَيْرُ كَافِرٍ بِلَا اِسْتِحْلَالٍ وَاِسْتِخْفَافٍ
نو په دلائلو ثابته شوه۔ چه د لویو ګناهو نو کونکے اګر که پرله پسے ئے کوي۔ کافر نه دے
خو چه حلال ئے نه ګنړي۔ په دے کفر راځي۔ او دا خو پټه خبره ده۔ ......
وَالْاِسْتِحْلَالُ الْمُوْجِبُ لِلْكُفْرِ اَمْرٌ بَاطِنِيٌّ لَا يَعْلَمُهُ اِلَّا اللّٰهُ فَاَحْكَامُ
چه صرف خدائے ته معلومه ده۔ نو کفر او
الْكُفْرِ وَالْاِيْمَانِ تَجْرِيْ عَلَى الْاِقْرَارِ دُوْنَ التَّصْدِيْقِ وَاِنْ كَانَ الرُّكْنُ
اسلام په اقرار بانذے دے نه په تصديق باندے۔ اګر که اصلي رکن
الْاَصْلِيْ هُوَ التَّصْدِيْقُ عِنْدَ اللّٰهِ۔ وَقَضَاءُ الْعُمْرِيِّ الْمُتَعَارِفُ
د خدائے په نزد تصديق دے۔ ....... او دا مشهوره قضاء عمري چه د
فِيْ اٰخِرِ جُمُعَةٍ مِنْ رَمَضَانَ بِالصَّلٰوةِ الْخَمْسِ بِجَمَاعَاتٍ عَظِيْمَةٍ اِظْهَارُ
روژے په اخره جمعه کښ په پنځه مونځونو د جمع سره کیږي۔ دا لوئي جهالت دے۔ د
جَهْلٍ عَظِيْمٍ لَا اِخْفَاءَ عَلٰى مَنْ لَهٗ ذَوْقُ عِلْمٍ وَتَمَسُّكُهُمْ فِيْ اِثْبَاتِهَا بِحَدِيْثٍ
اهل د علم په خوند پوهیږي ونکو نه پټه خبره نه ده۔ او د دے په ثبوت کښ
مَوْضُوْعٍ مَنْ قَضٰى خَمْسَ صَلٰوةٍ فِيْ اٰخِرِ جُمُعَةٍ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ كَانَ
یو موضوعي حديث دے۔ چه چا پنځه مونځونه په اخري جمعه د رمضان کښ اوکړه۔ نو دا
ذٰلِكَ جَابِرٌ لِكُلِّ صَلٰوةٍ فَاتَتْهُ فِيْ عُمْرِهٖ اِلٰى سَبْعِيْنَ سَنَةً (ملا علی قاری)
به د ده د ټول عمر د قضا مونځونو تړاو یا کالو پورے او دریږي۔ ملا علي قاري
صَغِيْرٍ وَكَبِيْرٍ اَخْذٌ هٰذَا الْحَدِيْثُ ثُمَّ قَالَ بَعْدَهٗ بَاطِلٌ قَطْعًا لِاَنَّهٗ
صغیر او کبیر دا حديث لیکلے دے۔ بیا ئے اووے۔ چه دا حديث باطل دے د سره۔ حکم چه دا

مُنَاقِضٌ لِلْإِجْمَاعِ عَلٰى اَنَّ شَيْئًا مِّنَ الْعِبَادَاتِ لَا يَقُوْمُ مَقَامَ فَائِتَةٍ سَنَوَاتٍ

دا مخالف دے د اجماع نه۔ چه هیڅ عبادات نه اُدریگی۔ د کلونو د قضا مونځونو په ځائے۔
ثُمَّ لَا عِبْرَةَ لِنَقْلِ النِّهَايَةِ وَلَا بَقِيَّةِ الشُّرَّاحِ الْهِدَايَةِ۔ فَاِنَّهُمْ لَيْسُوْا مِنَ

بیا هیڅ اعتبار نشته د نهایه او نه د نورو د شارحینو۔ ځکه چه دوی خو محدثین نه دی
الْمُحَدِّثِيْنَ وَلَا اَسْنَدُوا الْحَدِيْثَ اِلٰى اَحَدٍ مِّنَ الْمُخَرِّجِيْنَ (ملا علی قاری)

او نه ئے د دے حدیث چا ته نسبت کړے دے۔ چه هغه دے تحقیق کړے وی۔ . . . .
وَ ذُكِرَ فِيْ فَوَائِدِ الشَّوْكَانِيْ حَدِيْثُ مَنْ صَلّٰى فِيْ اٰخِرِ جُمُعَةٍ مِّنْ رَمَضَانَ

او په فوائد الشوکانی کښ ذکر شوے دے۔ چه دا حدیث چه چا په آخرے د جمعے د رمضان
خَمْسَ صَلَوٰةٍ مَفْرُوْضَةٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ قُضِيَتْ عَنْهُ مِنْ صَلَوٰتِ سَنَةٍ

پنځه فرض مونځونه په شپه او ورځ کښ اُکړه۔ نو دا به د کال د قضا مونځونو بدل
هٰذَا مَوْضُوْعٌ لَا شَكَّ فِيْهِ۔ وَ مَشْهُوْرٌ عِنْدَ الْمُتَفَقِّهَةِ بِمَدِيْنَةِ الصَّنْعَاءِ

اُوګرځی۔ دا حدیث بے شکه موضوع دے۔ او دا حدیث هسے د صنعاء په ښار کښ مشهور دے
وَلَا يَدْرِيْ اَحَدٌ مَّنْ وَضَعَهُ لَهُمْ۔ (الشوکانی) وَهٰكَذَا فِيْ زُرْقَانِيْ شَرْحِ

او دا نه ده معلوم چه دا چا د دوی د پاره جوړ کړے دے۔ (شوکانی) او د غسے په زرقانی کښ دی۔
مَوَاهِبِ اللَّدُنِّيَّةِ جلد صفحہ۔ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ مَنِ افْتَرٰى عَلَيَّ كَذِبًا

چه د مواهب الدنیه شرح ده۔ خو د نبی وے۔ چه چا په ما دروغ اُوتړل۔ نو د ځائے
فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهٗ مِنَ النَّارِ۔ (بخاری) وَقَالَ عَلِیُّ الْقَارِيْ مَنْ عَمِلَ بِخَبَرٍ

په دوزخ کښ ځائے جوړ کړه۔ (بخاری) او علی قاری وے۔ چه چا په داسے خبره عمل اوکړ۔
صَحَّ اَنَّهٗ مَوْضُوْعٌ فَهُوَ مِنْ خُدَّامِ الشَّيْطَانِ۔ وَقَالَ شَاهْ عَبْدُ الْعَزِيْزِ

چه ده ته معلومه وی۔ چه دا موی دے۔ نو دے د شیطان خادم دے۔ او شاه عبد العزیز په
فِي الْعُجَالَةِ النَّافِعَةِ اَنَّ قَضَاءَ الْعُمْرِيْ مُخَالِفٌ عَنْ قَوَاعِدِ الشَّرْعِ وَالْعَقْلِ

عجالة النافعه کښ وائی۔ چه قضاء عمری د شریعت د قواعدو خلاف ده۔ او د عقل نه هم۔
بَلْ يُخَالِفُهُمَا وَيُكَذِّبُ بِهِمَا اِمَّا كُتُبُ الْاُصُوْلِ الْمُمَاثِلَةُ مَاْخُوْذَةٌ فِيْ تَعْرِيْفِ

بلکه د شریعت دروغجن کوی۔ هر چه د اصولو کتابونه دی۔ نو دوی لیکی۔ چه په قضا
الْقَضَاءِ وَلَا مُمَاثِلَةَ فِيْ قَضَاءِ الْعُمْرِيْ مَعَ صَلٰوةِ الْعُمْرِ وَبِغَيْرِ الْمُمَاثِلَةِ لَا يَصِحُّ

کښ برابرو والے پکار دے۔ او په قضاء عمری کښ د عمر د مونځونو سره برابرتیا نشته۔ او بے برابری قضا نه صحیح کیګی

الْقَضَاءُ - لِاَنَّ صَلٰوۃَ سَنَةٍ وَاحِدَۃٍ اَلْفٌ وَ ثَمَانِیَةُ مِاَۃٍ فَکَیْفَ یُسَاوِیْ

حکم چه تیر کال خو زر او اته سوه مونځونه دی - نو پنځه مونځونه به د عمری قضا مونځو نو څنګه

الصَّلٰوۃُ الْخَمْسُ مَعَ قَضَاءِ الْعُمْرِ وَ لَیْسَ مِنَ اللّٰهِ وَ رَسُوْلِهٖ قَوْلٌ لِقَبُوْلِ الْخَمْسِ

برابر شی - او د خدای او د رسول دا سې ویینا نشته - چه پنځه مونځونه به د عمری مونځو نو په ځای

مِنْ صَلٰوۃِ الْعُمْرِ بَلْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ مَنْ نَامَ مِنْ صَلٰوۃٍ اَوْ نَسِیَهَا فَلْیُصَلِّهَا

قبول شی - خو نبی ﷺ وائی - چه که څوک د مونځ نه اوده شه - یا ئې هیر شه - نو چه ورته

اِذَا ذَکَرَ وَ لَا کَفَّارَۃَ لَهٗ اِلَّا ذَالِکَ (مشکوٰۃ) فَعُلِمَ مِنْ هٰذَا الْحَدِیْثِ نَفْیُ الْکَفَّارَۃِ

یاد شی - نو دا دې اوکی - او د دې بدل نشته - نو صرف هم دغه مونځ - نو د دینه معلوم

بِمَا سِوَی مِنَ الصَّلٰوۃِ الْفَوْتِیِّ - فَقَضَاءُ الْفَوْتِیِّ لَا یَکُوْنُ اِلَّا بِمِقْدَارِ الْفَوْتِیِّ

شوه - چه د مونځ کفاره صرف هغه اداء مونځ دې - نو د قضاء بدل به د قضاء

مُسَاوِلَهٗ فِی الْعَدَدِ - وَ صِفَةُ الْفَرْضِیَّةِ فَاَرْبَعُ رَکْعَاتٍ مِنَ النَّفْلِ لَیْسَ لَهٗ

په برابر کیږی - چه د هغې اداء شمار ئې وی - او د فرض صفت پکښې وی - نو

اَصْلٌ مِنْ اُصُوْلِ الشَّرْعِ وَ لَیْسَ لَهٗ مُمَاثَلَةٌ فِی الْعَدَدِ مَعَ صَلٰوۃِ الْعُمْرِ

څلور نفل رکعتونه د دې په شریعت کښې څه اصل نشته - او نه د دې شمار د

وَ صِفَةِ الْفَرْضِیَّةِ لِاَنَّ الْقَضَاءَ لَا یَکُوْنُ اِلَّا مِنَ الْفَرْضِ فَکَیْفَ یُسَاوِیْ

قضاء عمری په شمار برابر دې - او نه نفل فرض کرځی - او قضاء خو صرف د فرضو لازم ده

النَّفْلُ مَعَ الْفَرْضِ وَ یَصِیْرُ خَلَفًا مِنْهَا وَ لَوْ کَانَتِ الصَّلٰوۃُ الْخَمْسُ

نو فرض به د نفلو برابر کله اوګرځی - او نفل به د فرضو په ځای څنګه اودریږی - او که دا

خَلَفًا مِنْ قَضَاءِ الْعُمْرِ لَکَانَ نِعْمَةً عَظِیْمَةً مِنْ اَحْکَامِ الشَّرْعِ فَلَا یَلِیْقُ تَرْکُهَا

پنځه مونځونه د عمری قضاء مونځو ځای ئې اودریدې شو - نو بیا خو دا لوئې نعمت دې

مِنْ اَصْحَابِ الْکُتُبِ الْمُعْتَبَرَۃِ بَلِ اللَّائِقُ لِاَصْحَابِ الْکُتُبِ مِنَ الْمُتُوْنِ وَ الشُّرُوْحِ

د شریعت په حکمونو کښې - نو د کتابو نو والے ذکر نه که - مناسب خو دا وو - چه دا به متنو

ذِکْرُ قَضَاءِ الْعُمْرِیْ بِالصِّفَةِ الْمُتَعَارَفَةِ وَ یَاْتُوْنَ بِبُرْهَانٍ وَاضِحٍ لِئَلَّا یَبْقٰی

او شرحو کښې ذکر شوې وې - هم په دې طریقه باندې چه په مونږ کښې مروج دې - او پکښې به

فِیْهِ نِزَاعُ اَحَدٍ فَاِنْ لَمْ یَفْعَلُوْا ذَالِکَ فِی الْاَزْمِنَةِ الْمَاضِیَةِ فَثَبَتَ اَنَّ هٰذِهٖ

ښکاره دلیل راوړې وو - چه پکښې جګړه نه وې - او که هیڅ کتاب په تیره زمانه کښې د دې ذکر نوی کړې

الصَّلٰوةَ بِدْعَةٌ قَبِيحَةٌ فَيَجِبُ الْاِحْتِرَازُ عَنْهَا۔ لِاَنَّ فِي مِثْلِ هٰذِهِ الْاَعْمَالِ

نو دا ثابته شوه۔ چه دا مونځ ناکاره بدعت دے۔ نو د دینه بچ کیدل پکار دی۔ ځکه چه

رِضَاءُ الشَّيْطَانِ وَهُوَ يَظُنُّ فِيْهِ الثَّوَابَ وَفِيْهِ خَوْفُ زَوَالِ اِيْمَانٍ۔ ۔

په دے قسم عملونو کښ د شیطان رضا حاصلیګی۔ او دے په دے ګمان کښ دے چه په دے کښ ثواب دے۔ او په دے

عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقْبَلُ اللّٰهُ تَعَ

د ایمان د تلو ویره ده۔ د حذیفه رض نه روایت دے۔ دا وائی۔ چه خوږ نبی ص وے۔ چه د بدعتی

لِصَاحِبِ بِدْعَةٍ صَوْمًا وَلَا حَجًّا وَعُمْرَةً وَلَا جِهَادًا وَلَا صَرْفًا وَلَا عَدْلًا۔

بندګی نه روژه۔ ۔ ۔ ۔ ۔ او نه حج۔ او نه عمره۔ او نه جهاد۔ او نه خیرات۔ او نه انصاف

يَخْرُجُ مِنَ الْاِسْلَامِ كَمَا يَخْرُجُ الشَّعْرُ مِنَ الْعَجِيْنِ وَعَنْ عِرْبَاضٍ قَالَ

قبلیګی۔ دے د اسلام نه داسے اوځی۔ لکه وېښته د اوړو نه او د عرباض نه۔ روایت دے

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ وَقَّرَ صَاحِبَ بِدْعَةٍ فَقَدْ اَعَانَ

چه خوږ نبی ص وے۔ څوک چه د بدعتی عزت اوکی۔ نو دهٔ د اسلام په نړولو کښ امداد اوکه۔

عَلٰى هَدْمِ الْاِسْلَامِ۔ (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْاِيْمَانِ مُرْسَلًا مشكوٰة)

دا د بیهقی په شعب الایمان کښ روایت دے۔ (مشکوٰة)

وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوْشِكُ اَنْ يَاْتِيَ عَلَى النَّاسِ

او د علی نه روایت دے۔ دا وے۔ چه خوږ نبی ص وے۔ چه نزدے دا۔ چه په خلقو داسے

زَمَانٌ لَا يَبْقٰى مِنَ الْاِسْلَامِ اِلَّا اسْمُهٗ وَلَا يَبْقٰى مِنَ الْقُرْاٰنِ اِلَّا رَسْمُهٗ مَسَاجِدُهُمْ

زمانه راشی۔ چه صرف د اسلام نوم به پاتے شی۔ او د قرآن حروفونه به پاتے شی۔

عَامِرَةٌ وَهِيَ خَرَابٌ مِنَ الْهُدٰى عُلَمَاءُهُمْ شَرُّ مَنْ تَحْتَ اَدِيْمِ السَّمَاءِ

جماتونه به ئے آباد وی۔ خو د هدایت نه خالی وی۔ او د دے عالمان به د اسمان د لاندے خراب

مِنْ عِنْدِهِمْ تَخْرُجُ الْفِتْنَةُ وَفِيْهِمْ تَعُوْدُ (رواه البيهقي) وَعَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ

خلق وی۔ فتنے به د دوی نه راوځی۔ او بیا به ئے خوره وی۔ او د ابوهریره نه روایت دے

قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صلعم۔ مَثَلُ عِلْمٍ لَا يُنْتَفَعُ بِهٖ كَمَثَلِ كَنْزٍ لَا يُنْفَقُ فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ

دا وے۔ چه خوږ نبی ص وے۔ چه په علم فائده نه رسیګی۔ نو دا لکه د هغے خزانے چه په خدائی لار

(مشكوٰة) فَاِذَا ذَهَبَ التَّحْقِيْقُ مِنْ عُلَمَاءِ الزَّمَانِ وَلَا قُدْرَةَ لِلْجُهَلَاءِ

نه لګی۔ پس هر کله چه تحقیق د زمانے علماؤ نه کوی۔ او جاهلان خو دا قدرت نه لری

عَلَى التَّحْقِيقِ فَكَانَ هٰذَا الزَّمَانُ الزَّمَانُ الْمَوْعُوْدُ لِاَنَّ اَكْثَرُ عُلَمَاءِ

نو معلومیږي. چه دا زمانه هم د همه صفات لرونکے زمانه ده. نن روځ عالمانو په

الْوَقْتِ مُجَرٌ وَاعْمَلُ الْقُرْاٰنِ وَالْحَدِيْثِ وَبِنَاءُ الْاِسْلَامِ عَلَيْهِمَا فَلَا

قرآن حدیث عمل پریخوده. او ویځ د اسلام دا دواړه دي. نو خود

يَبْقىٰ مِنَ الْاِسْلَامِ اِلَّا اِسْمُهٗ وَلَا يَبْقىٰ مِنَ الْقُرْاٰنِ اِلَّا رَسْمُهٗ. وَقَالَ

د اسلام نوم پاتے شو. او د قرآن تش حرفونه پاتے شو.

رَسُوْلُ اللّٰهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ تَرَكْتُ فِيْكُمْ اَمْرَيْنِ لَنْ تَضِلُّوْا مَا تَمَسَّكْتُمْ

او خوږ نبي وے. چه ما پتا سو کښې دوه څیزونه پریخوده. چه په دے عمل کوئ

بِهِمَا كِتَابُ اللّٰهِ وَسُنَّةُ رَسُوْلِ اللّٰهِ. فَثَمَرَاتُ هِجْرَانِهِ لَا يَكُوْنُ

نو نه به ګمراه کیږئ. قرآن او حدیث. نو د دے دواړو د پریخودو نتیجه ګمراهي ده.

اِلَّا ضَلَالٌ بِمُوْجِبِ الْحَدِيْثِ وَاِخْتِلَافٌ بِمُوْجِبِ الْاٰيَةِ وَلَا تَكُوْنُوْا

د دے حدیث په بناء او اختلاف دے د دے ایت په وجه. چه تاسو د ځکنو

كَالَّذِيْنَ تَفَرَّقُوْا وَاخْتَلَفُوْا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ اُولٰٓئِكَ

کتابیانو غوندے مه کیږئ. او اختلاف مه کوئ. د وینته بنکاره دلائل راغلي ؤ د

لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ يَّوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوْهٌ وَّتَسْوَدُّ وُجُوْهٌ.

د دوئ د پاره لوئ عذاب دے. په کومه روځ به چه ځونه څه سپین او څه تور شي.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ. اِسْتِفْتَا بِوَاسِطَةِ حَضْرَتْ جِيْ مِنْ

د خدائي په نوم شروع ده. چه د ډیر مهربان دے دا پوښتنه ده د حضرت جي په ذریعه

مُفْتِيْ مَكَّةَ الْمُكَرَّمَةِ فِيْ بَابِ قَضَاءِ الْعُمْرِيْ. مَا قَوْلُكُمْ دَامَ فَضْلُكُمْ

د مکے د مفتي نه په باره د قضاء عمري کښې. ستاسو د دے قضاء عمري د موضوع په باره کښې چه

فِيْ اَنَّ الصَّلٰوةَ الْمَشْهُوْرَةَ فِيْ بَعْضِ الْبِلَادِ الْمُسَمَّاةَ بِالْقَضَاءِ الْعُمْرِيْ

په بعض ملکو کښې د دے رواج دے. څه وینا ده. دوئ پنځه مونځونه د دوجے په اخره

يُصَلُّوْنَ الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَةَ فِيْ اٰخِرِ جُمُعَةٍ مِنْ رَمَضَانَ بَعْدَ اَدَاءِ الصَّلٰوةِ

جمعه کښې د جمعے د مانځه نه روستو کوي.

الْجُمُعَةِ بِالْجَمَاعَةِ بِاَذَانٍ وَاِقَامَةٍ. وَيَجْعَلُوْنَ الثَّلَاثَةَ مِنْهَا اَرْبَعَةً

په جمع او په بانګ او اقامت سره. او د قضا د مانبام دے رکعتونه څلور جوړه کي.

عمداً ويسجدون لهذا العمد سجدة السهو باعتقاد ان هذه

او د دې قصد د پاره بيا سجده سهوه کوي - او دا يقين لري . چه دا د دوئ د ټولو

الصلوة تكون جبيرة للفائتة كلها فاتت في العمر . هل لهذه

مونځونو قضا به اوکړي - کوم چه د ده عمر په ټول عمر کښې قضاء شوي وو . نو چه د دې

الصلوة اصل في الشرع ام لا - و تجوز الصلوة المذكورة ام

څه ثبوت په شريعت کښې شته - او چه ط مونځ جائز دے - او کنه -

لا - بينوا توجروا = الجواب = الحمد لله وحده . والصلوة

په دليل سره د دې جواب اوکړئ = جواب - = د يو خدائ د پاره حمد وثنا دي . او په

والسلام على النبي بعده . ليس للصلوة المذكورة اصل في الشرع

خوږ نبي بيا درود دے . د دې مونځ هيڅ اصل نشته په شريعت کښې .

والحديث في باب قضاء العمري قال ملا علي قاري هو موضوع

او د دې په باره کښې حديث ملا علي قاري وئيلي . چه دا موضوعي دے . او دا باطل دے

وقال هو باطل قطعاً لانه مناقض للاجماع على ان شيئاً

د سره - ځکه چه دا د اجماع مخالف دې . چه هيڅ عبادة د قضاء کولو نو ځائے

من العبادات لا يقوم مقام فائتة سنوات . و قال لا عبرة

نه اودريږي . . . . . . . . . او د هدايه د

بنقل بعض شراح الهداية اياه فانهم ليسوا من المحدثين

د شرحو څه اعتبار نشته . . . . . . ځکه چه دوئ د محدثينو نه نه دي .

ولا اسندوا الحديث الى احد من المخرجين . وهكذا قال

او نه ئې د دې نسبت حديث کړه کوم يو ته کړې دے . و غيري شافعيان

علماء الشافعية كصاحب فتح المعين . وفي المغرب زيادة ركعة

علماء هم وائي - لکه فتح المعين - او بيا په ماښام کښې په درې رکعتونو

على الثلاثة غير جائزة اذا كانت عمداً وهذه الزيادة مفسد

يو رکعت څلورم زياتول - او بيا د قصده دا زياتي مونځ ماتوي - او د دې د

وسجدة السهو غير مصلح لها = خادم الشرع عبد الله بن عبد الرحمن مفتي مكة المكرمة ٣٢٦

بيا سجده سهوه کول - د دې سمولے نه راولي - مفتي عبد الله بن عبد الرحمن د مکے معظمے

وَهٰكَذَا اِسْتَفْتَيْتُ مِنْ عُلَمَاءِ دَيُوبَنْد وَعُلَمَاءِ كَانْپُور
او همدغسې ما د ديوبند او د كانپور د علماؤ نه فتوىٰ طلب كړه۔
فَجَوَابُهُمْ حُرْمَتُ الْقَضَاءِ الْعُمْرِيِّ اِمْضَاءُ الْمُفْتِيِيْنَ۔
نو دوئ هم دويته حرام اووې۔ او احمد علي كانپوري۔ مولوي عبد الغني مولوي
اَحْمَدُ عَلِي كَانْپُورِي۔ مَوْلَوِي عَبْدُ الْغَنِي۔ مَوْلَوِي مُحَمَّدْ حَسَنْ۔
او مولوي محمد حسن دستخطونه . . . . . . . . . . . . . . . . . .
مُوْلَوِي غُلَامُ رَسُوْلُ۔ سَيِّدْ عَلِي بِنْ جَانْ مُحَمَّدْ۔ عَزِيْزُ الرَّحْمٰنْ
اوكړه۔ دغسې مولوي غلام رسول۔ سيد علي د جان محمد زوئ۔ عزيز الرحمٰن
مُفْتِي دَارُ الْعُلُوْمِ دَيُوبَنْد وَمِنْ مُخْتَصَّاتِ كُتُبِ الْمُتَاخِرِيْنَ
د ديوبند مفتي دستخطونه اوكړه۔ او د روستو عالمانو په كتابونو كښې د
اَلْمُخَالَفَةِ مِنَ الْحَدِيْثِ مَنْعُ السُّنَّةِ بَعْدَ صَلٰوةِ الْفَجْرِ مَعَ
حديث مخالف داخبره ده۔ چه دوئ سنت چه د سحر پاتې شي۔ همغه د
الْاِمَامِ مَعَ اَنَّ الْحَدِيْثَ يَدُلُّ عَلٰى جَوَازِ قَضَائِهِمَا بَعْدَ الْفَرَائِضِ
فرضونه پس منع كوي۔ سره د دې چه حديث دا د فرضونه پس جائز مني۔
عَنْ قَيْسِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ رَاٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
د قيس بن عمرو نه روايت دے۔ ده وے۔ چه خوږ نبي ا سړے د مانځه نه
رَجُلًا يُصَلِّيْ بَعْدَ صَلٰوةِ الصُّبْحِ رَكْعَتَيْنِ۔ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
روستو په مانځه اوليده۔ چه دوه ركعته ئې كول۔ نو خوږ نبي اووے۔
صَلٰوةُ الصُّبْحِ رَكْعَتَانِ۔ فَقَالَ الرَّجُلُ اِنِّيْ لَمْ اَكُنْ صَلَّيْتُ
چه د سحر مونځ خو دوه ركعتونه دي۔ ده وے۔ دا خو هغه دوه مخكني
الرَّكْعَتَيْنِ الَّتِيْ قَبْلَهُمَا فَصَلَّيْتُهُمَا الْاٰنَ۔ فَسَكَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ
سنت كوم۔ چه ما نه پاتې شوي وو۔ نو خوږ نبي په دے چپ شه۔
(ابو داؤد صفحه ١٨٧) عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ
ابو داؤد صفحه ١٨٧ د ابو هريره نه روايت دے۔ چه خوږ نبي ووے۔
عَلَيْهِ وَسَلَّمَ۔ مَنْ لَمْ يُصَلِّ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ فَلْيُصَلِّهِمَا بَعْدَ مَا تَطْلُعُ!
چه څوك دوه ركعته سنت د سحر اُنه كي۔ نو هغه د نمر ختو نه روستو اوكي (٣)

الشمس (ترمذی) فبت قضاهما بعد الطلوع و قبله۔

نو دے دوارو رکعتونو قضاء د نور ختو نه پس او مخکښ ثابته شوه۔ نو د

فمنعهما مخالف من الحديثين وحرمان من الثواب العظيم

منع کول د حدیثونو خلاف دے۔ او د لوئ ثواب نه محروم والے دے۔

عن عائشة رض قالت قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ركعتا

د عائشے رض نه روایت دے۔ دے وے چه خوبر نبی ؐ وے۔ چه د سحر

الفجر خير من الدنيا وما فيها (مشكوٰة) صفحه ٩٦ = وايضا منع

دوه رکعته د دنیا او د دے د هر څه نه غوره دی۔ د غسے د سحر د سنتو

الكلام بعد سنة الفجر مخالفة من حديث عائشة رض قالت

نه روستو خبرے منع کول د عائشے د حدیث نه خلاف دے۔ دے وے چه

كان النبي عليه السلام اذا صلى ركعتي الفجر فان كنت

خوبر نبی ؐ به د سحر سنت اوکړه۔ نو که څه به ویښه وم۔ نو ما سره به ئے [illegible] اوکړے۔

مستيقظة حدثني والا اضطجع۔ (رواه مسلم) فالعمل بحديث

کنئی اړخ به ئے اولګوو۔ رواه مسلم۔ نو د خوبر نبی ؐ په

رسول الله صلى الله عليه وسلم لازم بحكم ما آتاكم الرسول فخذوه

حدیث عمل کول ضروری دی۔ د دے قرانی ایت په وجه۔ چه خوبر نبی ؐ

والعمل بقول احد من علماء الامة جهل عظيم وضلال بعيد

در ته څه عمل اخلئ۔ نو پکې عمل کوئی۔ او د نور چا عالمانو په وینا چه د حدیث

فكيف يرجون من مغفرة ربه وشفاعة نبيه يوم القيامة۔ و

خلاف وی۔ عمل کول اعی ده۔ دا قسم خلق به د خدائے نه د بخښنے۔ او د خوبر نبی ؐ د

قال تعا۔ ومن يعص الله ورسوله ويتعد حدوده يدخله نارا

شفاعت څنګه امید اوکی۔ حکمه چه څوک د خدائ او د رسول ؐ نافرمانی کوی۔ او د

خالدا فيها وله عذاب مهين۔ فلابد لنا من قاعدة كلية

پولو نه اوړی۔ نو د هیشګی اوره ته به داخل شی۔ او د وئیته به سپکونکے عذاب ورکیګی

ان كل مسئلة يخالف من اصول الدين فعلينا ان نترك العمل

نو دا یوه قاعده اُمنئے شوه۔ چه هره هغه مسئله چه د دین د اصولو نه مخالفه وی۔ نو په مونږ د

بِهَا لِخَوْفِ الْوَعِيْدِ وَأَمَّا تَرْكُ الْعَمَلِ بِالْجُزْئِيَّةِ فَلَيْسَ فِيْهِ وَعِيْدٌ

پر بجوه لازم دی۔ دَ عذاب وَيرے۔ او په تشه بے دليله مسئله کے عمل اُنشی نو پدے کښ عذاب نشته

وَلِنَظَائِرِ الْمَسَائِلِ الَّتِيْ مُوَافَقَتُهَا وَمُخَالَفَتُهَا غَيْرُ مَعْلُوْمٍ فَلَزِمَ

او دَ دے قسم مسئلو مثالونه چه موافقت او مخالفت ئے معلوم نه وی۔ نو دَ دے دَ

عَلٰى كُلِّ مُكَلَّفٍ طَلَبُ الدَّلِيْلِ مِنْ أُصُوْلِ الدِّيْنِ لِأَنَّهَا مِرْآةٌ لِتَصْحِيْحِ

دَ دليل طلب پکار دے۔ چه دَ دين په اصولو کښ دَ دے ليون او شی۔ ځکه چه دا

الْمَسَائِلِ۔ كَالْقُرْآنِ مِرْآةٌ لِتَصْحِيْحِ الْأَحَادِيْثِ كَمَا قَالَ النَّبِيُّ عَلَيْهِ السَّلَامُ

اصول يوه ائينه ده۔ لکه قرآن دَ حديث دَ پاره ائينه ده۔ خو نبیؐ وائی۔

اَعْرِضُوا الْأَحَادِيْثَ عَلٰى كِتَابِ اللهِ فَمَا وَافَقَ فَخُذُوْهُ وَمَا خَالَفَ

ځما احاديث په قرآن پيش کوئ۔ چه دَ قرآن موافق وی۔ نو دا منئ۔ او چه

فَاتْرُكُوْهُ۔ فَكَذَالِكَ الْجُزْئِيَّاتُ إِنْ وَافَقَتِ الْأُصُوْلَ فَاقْبَلُوْهَا

مخالف وی۔ نو دا پريکدئ۔ دَ غسے که دَ کتابونو مسئلے دَ اصولو موافق وی۔ نو دا منئ

وَمَا خَالَفَتْ فَاتْرُكُوْهَا۔ وَإِنْ كَانَتِ الْجُزْئِيَّاتُ الْمُطْلَقَةُ مَقْبُوْلَةً

او چه مخالف وی۔ نو دا پريکدئ۔ اګر که دا مسئلے په خلقو کښ مشهورے وی۔ چه موافق

مِنْ غَيْرِ الْمُوَافَقَةِ فَفِيْ بَعْضِ الْجُزْئِيَّاتِ الْخُرُوْجُ مِنَ الدِّيْنِ

والے ئے نه وی معلوم۔ ځکه چه په بعض مسئلو کښ په عمل بنده دَ پاک دين نه خارجيګی۔

الْمُطَهَّرَةِ وَوُقُوْعٌ فِيْ بِئْرِ الْكُفْرِ وَالضَّلَالِ۔ كَجُزْئِيَّةِ جَوَازِ كِتَابَتِ

او دَ کفر کوهی ته غورزيګی۔ لکه قرآن دَ پوزے په بينو وهکے وينه ليکل شو۔

الْقُرْآنِ بِدَمِ الرُّعَافِ كَمَا مَرَّ مُفَصَّلًا وَحِلُّ أُجْرَةِ الزَّانِيَةِ مَعَ

دَ غسے دَ زناکارے دَ زنا مزدوری شوه۔

تَحْرِيْمِهَا بِلِسَانِ رَسُوْلِ اللهِ غَلَطٌ وَفُحْشٌ۔

. . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . .

چه دا خو نبیؐ حرام کړيده۔

وَمِنْ أَهَمِّ الْمَسَائِلِ مَسْئَلَةُ الْإِسْقَاطِ۔ وَهِيَ جَمِيْعُ الْحُقُوْقِ

او په رواجی مسئلو کښ دَ مړی دَ اسقاط مسئله هم ده۔ او په دے کښ

مِنَ الْفَرَائِضِ وَالْوَاجِبَاتِ وَالنُّذُوْرِ وَالْكَفَّارَاتِ فِيْ أَلْفَاظِ

غوندے مال او قرآن دا تکی وائی۔ چه فرائض۔ واجبات۔ منتنے۔ کفارے پدے مال فدا کوم

الْإِسْقَاطِ مَعَ قِلَّةِ الْمَالِ لَا يَكْفِيْ بِفِدْيَةِ الْفَرَائِضِ لِأَنَّ

سره کړے چه دا لږ مال د فرضو فدیه هم نه کړی۔ حکه چه

فِدْيَةَ صَلٰوةٍ وَاحِدَةٍ وَصَوْمٍ وَاحِدٍ نِصْفُ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ

د یو مونځ فدیه د غنمو د روژے نیم کوړے غنم یا یو

أَوْ صَاعٌ مِنْ شَعِيْرٍ۔ فَفِدْيَةُ صَلٰوةِ سَنَةٍ وَاحِدَةٍ...

کوړے اوربشے دی۔ په دے حساب د یو کال د مونځونو فدیه

تِسْعَ مِائَةِ صَاعٍ وَأَكْثَرُ النَّاسِ لَا يُصَلُّوْنَ الْعُمُرَ فَإِذَا

نهه سوه کوړی غنم شو۔ او ډیر خلق خو ټول عمر مونځ نه کوی۔

لَمْ يَكْفِ مَالُهٗ لِصَلٰوةِ سَنَةٍ فَكَيْفَ يَكْفِيْ لِصَلٰوةِ الْعُمُرِ

نو چه پیدا مال د یو کال فدیه نه کیګی۔ نو د ټول کال فدیه به څرنګ اوشی

وَإِذَا اجْتَمَعَ مَعَهَا فَرَائِضُ أُخْرٰى وَالْوَاجِبَاتُ وَالنُّذُوْرُ

او چه لا نور فرض ورسره شی۔ او واجب او منخے او کفارے خو بیا هر څه

وَالْكَفَّارَاتُ۔ وَقَالَ صَاحِبُ الْهِدَايَةِ اَلْفَرَائِضُ مُقَدَّمَةٌ

خراب شو۔ د هدایے مصنف وائی۔ چه فرض په وصیت کښ مخکښ

فِي الْوَصِيَّةِ لِأَنَّهَا أَهَمُّ مِنَ النَّافِلَةِ وَالظَّاهِرُ مِنْهُ الْبِدَايَةُ

دی۔ حکه چه دا د نفلو نه ډیر ضروری دی۔ او شروع خو په ضروری کیګی۔

بِمَا هُوَ الْأَهَمُّ فَإِنْ تَسَاوَتْ فِي الْقُوَّةِ بُدِئَ بِمَا قَدَّمَهُ مُوْصِيْ

بس که طاقت ئے برابر وو۔ یو قسم فرض وو۔ نو بیا چه وصیت کوونکی کوم

إِذَا ضَاقَ عَنْهُ الثُّلُثُ۔ وَحُقُوْقُ اللّٰهِ إِمَّا أَنْ يَكُوْنَ كُلُّهَا

کوی۔ هغه او چه دا په دریمه نه پوره کیګی۔ نو هله که حقوق ټول د ده په ذمه

فَرَائِضُ كَالزَّكٰوةِ وَالْحَجِّ وَالصَّوْمِ وَالصَّلٰوةِ۔ أَوْ كُلُّهَا وَاجِبَاتٌ

فرض وو۔ لکه زکوٰة حج روژه او مونځ یا ټول واجب وو۔

كَالْكَفَّارَاتِ وَالنُّذُوْرِ وَصَدَقَةِ الْفِطْرِ أَوْ كُلُّهَا تَطَوُّعٌ كَا

په کفارو او منختو او سر ساے کښ۔ یا ټول نفل وو

الْوَصِيَّةِ بِحَجِّ التَّطَوُّعِ وَالصَّدَقَةِ عَلَى الْفُقَرَاءِ فَإِنْ جُمِعَ

لکه د نفلی حج وصیت۔ او په فقیرانو خیرات۔ نو که دا ټول وصیتونه جمع شی۔

بَيْنَ هٰذِهِ الوَصَايَا كُلِّهَا فَإِنْ كَانَ ثُلُثُ مَالِهٖ يَحْمِلُ مَا

او د دریمه د مال دده د پاره کافی کیګي د نو د ټولو د پاره

اَوْصٰی بِهٖ فَإِنَّهٗ يَنْفُذُ وَصَايَاهُ كُلُّهَا مِنْ ثُلُثِ مَالِهٖ وَإِنْ كَانَ

وصیت جائز دے۔ چه د دریمې نه ورکوے شي۔ او که دا

الثُّلُثُ لَا يَحْمِلُ ذَالِكَ فَإِنَّهٗ يَنْظُرُ إِنْ كَانَ فَرَائِضُ فَإِنَّهٗ

وصیتونه په دریمې د مال نه پوره کیږده۔ نو اول به په فرضو شروع کوي۔

يَبْدَأُ بِمَا بَدَأَ بِهِ الْمَيِّتُ وَإِنْ كَانَ بَعْضُهَا فَرَائِضُ۔ وَ

د غسے بیا په واجباتو۔

بَعْضُهَا وَاجِبَاتٌ وَبَعْضُهَا تَطَوُّعَاتٌ۔ فَإِنَّهٗ يَبْدَأُ بِالْفَرَائِضِ

بیا په نوافلو۔

اَوَّلًا۔ ثُمَّ بِالْوَاجِبَاتِ۔ ثُمَّ بِالتَّطَوُّعِ۔ (كفايه)

وَلَمَّا كَانَ رِجَالُ هٰذَا الزَّمَانِ لَا يُبَالُوْنَ بِقُوَّةِ الْفَرَائِضِ

ولے د دے زمانے خلق د دے هیڅ پروا نه لري۔ چه څنګه

فَلَا يَكْفِي مَالُهٗ عَنْ فَرَائِضِ سَنَةٍ وَاحِدَةٍ فَكَيْفَ يَكْفِي

فرض پاتے شو۔ او څکه د دوی مال د یو کال د فرضو د پاره نه کافی کیګي۔

عَنْ سَنَوَاتِ الْعُمُرِ۔ فَلَابُدَّ أَنْ يَصْرِفَ ثُلُثَ مَالِهٖ اَوَّلًا

د ټولو د عمر به څنګ کافی شي۔ نو اول د فرض فدیه یکا ده۔

إِلَى الْفَرَائِضِ بِقَدْرِ مَا يَكْفِي وَبَقِيَ عَلٰى ذِمَّةِ الْمَيِّتِ مِنَ

چه څومره به کیګي۔ او باقي فرض او واجب به د مړي په ذمه پاتے شي۔

الْفَرَائِضِ وَالْوَاجِبَاتِ۔ وَإِذَا جُعِلَ مَالٌ قَلِيْلٌ بِقَدْرِ

او که مال تلک وي۔ تش د یو کال فدیه

فِدْيَةِ سَنَةٍ وَاحِدَةٍ مَثَلًا بِقَدْرِ فَرَائِضِ الْعُمُرِ فَيَقْسِمُ

په که ګي۔ او دے دا تلک مال د ټول عمر په فرضو

ذَالِكَ بِجَمِيْعِ فَرَائِضِهٖ فَيَنْقُصُ مِنْ مِقْدَارِ الْوَاجِبِ الشَّرْعِيِّ

اُویشي۔ نو د یو مو فرض فدیه پوره ورنه کړے شوه۔ چه شریعت مقرر کړی ده۔

